تحریری کورس مناظرہ

# تشریحات النابغة في حل المسائل المختلفة

من ملفوظات

شیخ الاسلام سلطان المناظرین نابغۃ العصر شیخ القرآن والحدیث شہید ابن شہید

ابوالعزیز غلام حضرت غلام الحنفی شہید عرف نابغہ تقبلہ اللہ

تحریر وترتیب

سید محمد ثواب

ابن سید الاخیل باچا صاحب

دوسرا حصہ

ناشر

مدرسۃ حذیفۃ الاحناف

بسمِ اللهِ الرَّحمٰنِ الرَّحیم

# مسئلۃ الرد علی البانی الواھابی

ازتشریحات

النابغہ

# الرد على الألباني الوهابي :

# التحقيق في الرد على الالباني الوهابي :

اعوذ بالله من الشيطن الرجيم بسم الله الرحمن الرحيم ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لِمَ تَقُولُونَ مَا لَا تَفْعَلُونَ كَبُرَ مَقْتًا عِندَ اللَّهِ أَن تَقُولُوا مَا لَا تَفْعَلُونَ﴾

و ايضاً قال الله تبارك وتعالى : ﴿أَفَرَأَيْتَ مَنِ اتَّخَذَ إِلَٰهَهُ هَوَاهُ وَأَضَلَّهُ اللَّهُ عَلَىٰ عِلْمٍ﴾ .

نن بله مسئله چې زيرِ بحث کړځو هغه مسئله رد على الالباني ده ځکه يې زيرِ بحث کړځو چې نن صبا طالبان او ملايان لاړشي د قصه خواني مکتبو ته چې کتاب اخلي وايي هغه کتاب راکړه چې محقق وي نو ده غريب نوي د تحقيق نوم اوريدلې وي او په دې باندې خبر نه وي چې دا تحقيق پرې چا کړې دي يو خو پخواني محدثين وه لکه حافظ العراقي چې تخريج د احاديثو د احياء هغه کړې دي د احياء العلوم احاديث يې نقل کړي او د هغې تخريجات يې کړي .

او يو دا نن صبا تخريجات دي دا نن صبا چې کوم تخريجات دي دا کمپيوترائز دي دا مکتبې ورسره کمپيوتر کې پرتې دي او راپورته کيږي حديث پرې را اړوي علمي قوه خپله نه لري په اسماء الرجال په علم درايت الحديث او روايت الحديث کې هيڅ فهم نه لري په اصطلاحاتو او په حديثو باندې علم نه لري بس د ځان نه تقليداً للالباني که تخريجات کوي او څه خبرې نقلوي کوم حديث چې ددوي د رايې او هوا خلاف وي بس هغه ضعيف او چې کوم حديث ضعيف وي او ددوي د رايې موافق وي هغه قوي .

په دغه سلسله باندې دوي تحقيقات کړې او تخريجات يې کړې نو چونکې په دې فتنه کې طالبان او علماء ټول اخته دي چې دوي دا فرق نه کوي چې دا تحقيق چا کړې دي ، خو خوشحال شو چې ما کتاب واخيسته تحقيق والا دي او يو کتاب هم دې وهابيانو بې تحقيقه نه دي پريښې دا اسانه رد دي .

اوس که داسې عنوان يې ورکولې چې زه د امام ترمذي په رد باندې کتاب ليکمه نو هر چا به ويل چې دا څومره ګستاخ دي د محدث خلاف کتاب ليکي راځه داسې عنوان مه ورکوه چې ما د ترمذي رد کړې دي عنوان ورکړه تخريج احاديث ترمذي د ترمذي د احاديثو

تصحیح مې کړې دي نو تخریج ته څه ضرورت دي د ترمذي صحاحو سته وو کې چې حدیث پیدا شي ما ته د نورو د کتابونو د تخریجاتو څه ضرورت دي خو دې راپورته کیږي تمامه ترمذي کې چې کوم احادیث دده د رایې موافق دي صحیح او چې دده د رایې خلاف دي ضعیف.

طالب بره حدیث وګوري لاندې چې تحقیق ته وګوري ضعیف همیشه یې پریږدي هغه وایي چې رشتیا ضعیف دي بیا شعیب الأرنوط دي او که نور دي هغوي یې خپله وکړي نور خو ړانده چرګان دي بیا څه وایي:

کذا قال الشیخ في السلسلة. دا چې ما څه ویلې داد شیخ په سلسله کې دي.

مراد له شیخ نه الباني اخلي او مراد له سلسلې نه سلسة احادیث ضعیفه اخلي او یا که حدیث دفع کوي:

کذا قال الشیخ في صحیحه سلسلة الاحادیث الصحیحة.

هغه یو بل کتاب لیکلي دي بس په هغې حواله شي نو طالبانو تحقیق نشته نن صبا د رایې اتباع ده د هوا اتباع ده او دغه کوم تحقیقات یې چې کړې کمپیوترائز دي کله هم چې کتاب اخلي محقق مه اخلي تیر شي له دې تحقیق نه خپله پرې تحقیق وکړي تخریج وکړي بیا به درته پته لګیږي چې حدیث څنګه دي او که ددوي تحقیقاتو پسې لاړې نو دوي هغه حدیث چې د رایې موافق دي قوي او که د رایې مخالف دي ضعیف او که بیا هم تاسو معلومات کوي چې دا محقق به څوک وي د اردن او د شام اهلسنت هم تحقیقات کړې دي خو بیا هم تاسو هلته په مکتبه کې دري څلور پاڼې د هغه کتاب وګوري په هره پاڼه کې حواله پرې ورکوي: کذا اقر الالباني في صحة الاحادیث، یا: کذا قال الشیخ الالباني في السلسلة چې دغه تکې مو په کې ولید بس رد یې کړې، دې نه تیر شي دا له فساد نه ډک وي.

نو زه تاسو ته د الباني تعصبات بنایمه تاسو به وایي چې شیخ غلام حضرت هسې له وهابیانو سره وران دي او له الباني سره دا الباني نن صبا وهابیان وایي چې الباني مجتهد نه شي نو امت کې له سره مجتهد تیر شوې نه دي دو مره غټه عقیده ورته ساتي دا دوه کسان نن صبا په امت کې معروف ګرځیدلي دي او ډیر خطرناک دي یو د هغې نه ډاکټر ذاکر نائیک

چې دا هم اهل حدیث غیر مقلد دي او دعوی د اجتهاد یې هم کړې ده چې زه مجتهد یم ه شکل به یې تاسو نه وي کتلې ذره نور په کې نشته نو یو په ذاکر نائیک باندې عوام دهوکه شول.

او په البانې باندې علماء او طالبان دهوکه شول او دواړه د اهل حدیثو نه دي دواړه د برطانیه د دیني ادارو سرسخته جاسوسان دي برطانیه زمونږ اسلامي تاریخ کې د مسلمانانو سره انتهائي زیاته دشمني کړې ده دا اوس یې مه ګورې چې نرمي کوي دا له جنګ ولیدلې دي اسلامي تاریخ کې امریکا خو اوس مینځ ته راغله ټوله مقابله د مسلمانانو سره برطانیه کړې ده.

برطانویانو یو تنظیم لري په نوم د تنصیر باندې د تنصیر دغه تنظیم معنی داده چې غیر نصراني په څه شکل نصراني شي خلک نصرانیان کول بیا چې په برطانیه کې څومره عیسویان دي زمونږ څو ځلویښتمه روپي د زکات ده د هغوي ځلورمه روپي د زکات ده نو کوم چې دوي کې په نصرانیت متدین اشخاص دي چې زکات ورکولو والا قول کوي او ورکوي یې هغوي ټول په ټوله دا روپي را اخلي تنصیر تنظیم ته یې ورکوي بیا د تنصیر تنظیم د مسلمانانو په ملکونو کې ځلور یا پنځه شبکو باندې کار کوي.

یوه شبکه دار الایتام ده چیرته چې دار الایتام ګورې دا د برطانیه د تنصیر د تنظیم پرچار دي ددوي مقصد یتیمان راغونډول وي دې ادارو ته او په هغې کې عیسویان کول څومره دار الایتام چې دي سخته پابندي ده هلته څوک غیر هلته نه شي ننوتلې چې هلته څه حالات دي غیر له دغه طلباو نه به هیڅوک پرې پوه هم نه شي چې هلته طریقه د تدریس او تعلیم څه ده کوم کتب درس کیږي حفظ کیږي که علم کیږي.

چې شل (۲۰) کاله د دار الأیتام خوا کې تیر کړي خو ته به پرې پوه نه شي چې دار الأیتام کې دننه د درس لهجه څه ده نو دا ډیره مخفي ده او دا ډیر په مخفي طریقه باندې دا یتیمان خواران چې پلارانو یې د نصرانیانو په خلاف شهادت ته ځان رسولې هغه بې دینان راولیږدل په یو څو روپو باندې چې د هغه کورني ته څه مفاد ورکوي بچي راولي دار الایتام کې داخلوي مرور د وخت سره اولني رتبه کې غیرِ مقلد او په منتها کې هغه بیا عیسوي شي.

دویم د تنصیر تنظیم پرچار هغه په تعلیم او تربیه دي مدارس جوړوي، او دریم مستشفی شفاخانې جوړوي په هغې کې بیا ډاکتران او نور پوهاندان د ملک هغوي

نصرانيت ته دعوت کوي او څلورم مؤسسات اين جيوز دي د کوهيانو د مساجدو د روډونو د پُلونو او د نورو خيريه ادارو په شکل باندې ايجادونه کوي او په هغه ملک کې د تنصير د تنظيم لپاره کارونه کوي او پنځم کار د تنصير د تنظيم اخبارات او رسالې چاپ کول دي .

دا کوم مضمون چې تاسو ته ما وويلو داد طالبانو په حکومت کې نهه (۹) کسان د عيسويت په تور جاسوسان ونيول شول اکثره خلکو ته به شايد چې پته وي څه سړي وه څه ښځې وي دا يې بنديان کړل او غزني ولايت ته يې نقل کړل دلته دنياوال راکرم شول په دې چې دا راخوشي کړي طالبانو نه خوشي کول .

کاشکې مخې سره اعدام شوې وي دا چې ولې معطل کړې شول والله اعلم او آخر کې خوشي هم شول د هغه کسانو باره کې د پنجاب نه يو اهل حديث وحدت اخبار ته بيان ورکړو چې اسلامي تاريخ کې د عيسويانو نه مسلمانانو ته څه خطر نه دي پيدا شوې طالبانو ته په کار دي چې د عيسويت په تور تورن کسان دې خوشي کړي .

داد اهل حديثو د يو مشر بيان وه هغه اخبار ما له ځان سره ساتلې دي نو په صبا باندې بيا يو بل اهل حديث چې هغه د استاد سياف په تنظيم کې يو مشر سړي وه هغه باندې دا خبرې غلطې لګيدلې وي نو هغه ټول د اهل حديثو تاريخ بيان کړې وه او د تنصير د تنظيم واقعې بيانې کړې وي نو داټوله قصه يې بيان کړه چې اسلامي تاريخ کې عيسويانو د تنصير په تنظيم سره څومره مسلمانان عيسويان کړل او په کومه لاره يې عيسويان کوي بيا يې د پاکستان تاريخ ويلې وه چې په دې تاريخ کې يو عيسوي هم نه وه نن دومره دي دا ټولو اسلامي ملکونو کې د هغوي کليساوې شمار کړې وي انتهائي زيات معلومات د غه دويم اهل حديث ته وه .

هغه اول ليکونکي احسان الهي ظهير وه مشهور اهل حديث دي او دا دويم چې جواب ليکلې وه د احسان الهي ظهير په جواب کې دا يې عنوان وه نو بيا يې دا عبارتونه ويلې وه او ويلې يې وه چې د تنصير تنظيم په پنځه شکله پرچار کوي لکه مخکې تير شو .

دغه براى نام مجتهد ډاکټر ذاکر نائيک د برطانيې کلک ګوډاګي دي وبه ګوري چې يو وخت کې به د مهديت دعوى هم دې کوي او ډير عوام به بيا ده پسې روان وي او دغه شان علماء يې چې پرې دوکه کړل هغه هم د برطانيې ايجنټ وه د تنصير د تنظيم لخوا نه روزل

شوې وه چې زمونږ په امت کې نه حدیث پریښودل او نه فقه ټول یې تس نس کړل ځکه دا عظیمه ذخیره د حدیثو چې امت پرې اعتماد کولو ده بې اعتماده کړه.

تاسو چې اوس ګوري صحیح ترمذي ضعیف ترمذي صحیح ابي داؤد ضعیف ابي داؤد حتی چې صحیح مسلم او ضعیف مسلم ته یې هم لاس واچولو بیا علماء د عربو او عجم را پورته شول او په دیې ردود وکړل.

دغه شان صحیح نسائي ضعیف نسائي صحیح مسند احمد ضعیف مسند احمد دا ټول یې تقسیم کړل بس چې کوم دده د رایې موافق وه او دده خوښ وه هغه قوي چې کوم دده د رایې خلاف وه هغه ضعیف داسې نه چې هغه تحقیق کولو دې باندې.

نو دا مسئله ما زیرِ بحث کړه چې طالبان دده په کتابونو عاشقان نه شي او دا ګمان ونه کړي چې دا ګنې د اسماء الرجال د علماو ددې فن نه دده.

ماکان اهلاً للتصحیح والتضعیف. الباني اهل د تصحیح او تضعیف نه وه.

لان الشرط التصحیح والتضعیف الحفظ والالباني ماکان حافظاً لذا تراه متناقضاً في اکثر المواضع. ډیرو ځایونو کې به دې متناقض ګوري ځکه حافظ نه دي یو ځای کې به حدیث ته ضعیف وایي بل ځای کې به ورته قوي وایي او دې خپله هم ځای په ځای په کتبو کې لیکلي چې زه حافظ ذ اوراقو د کتبو یمه خو زه حافظ د حدیثو نه یمه.

تدریب الراوي کې سیوطي رَحِمَهُ اللهُ لیکي چې شرط د تصحیح او تضعیف لپاره هغه حفظ دي چې حافظ د حدیثو وي تصحیح او تضعیف یې و مني که حافظ د حدیثو نه وه مه یې تضعیف مني مه یې تصحیح یو سړي وایي دا حدیث صحیح دي دا سړي حافظ د حدیثو دي او که نه دي که نه وه قول ته یې اعتبار نشته دا حدیث ضعیف دي هم هیڅ اعتبار ورته نشته ولې ډیر کرته سند ضعیف وي تفرد د روایت کې راوي باندې جرحه وي بیا له وجې د تعدد د طروقو نه چې بل کتاب بل محدث په بل سند سره دغه مضمون چلولې وي بل سند موجود وي هغه سند هم چې ځان ته واخلي ضعیف دي دا هم ضعیف دي دریم سند دي هغه هم ضعیف دي لیکن حدیث ضعیف اذا تعدد طرقه حسن لغیره شو او حسن لغیره له مقبولاتو نه دي نو مقبول شو.

که ته حافظ د حدیثو نه یې او یو سند پسې لاړې او دا یو راوي دي راتینګ کړو نو حکم به وکړي ضعیف اوس تعدد د طروقو تا ته څه پته ده چې دا حدیث خو مسند احمد هم را اخیستې دي دا خو طبراني او بیهقي هم را اخیستې دي په دغه مرتبه کې چې کوم راوي باندې جرحه کوم هلته بل راوي موجود دي نو چې حافظ د حدیثو نه وي حافظ د حدیثو کې دا کار وي چې هغه لکه قرآن کریم چې قاري ځان سره تکراروي میاشت کې یو ځل دوه هغه هم د احادیثو تکرار کوي ګردان یې کوي چې ګردان یې نه کړي له یاده یې نه وځي او چې کله څوک حافظ د حدیثو نه وي نو دې کله هم ددې حق نه لري چې د یو حدیث متعلق صحیح یا ضعیف وواېي نه شي ویلې ځکه هغه تعدد د طروقو دده په حافظه کې نه دي پروت.

دا په کمپیوټر هم نه معلومیږي کمپیوټر کې خو به ته یو حدیث ته ونښلې د هغې به تحقیق وکړي د ټولو احادیثو بیا تا ته څه پته لګي چې دغه حدیث بیا بل ځای کې په کومه طریقه ذکر دي او په کوم سند ذکر دي یو اځې او یو اځې دا په حفظ الحدیث کیږي چې کوم کسان حافظین د احادیثو وه لس لاکهه احادیث به یې یاد وه او دا ټول به یې مکررول د ګردان په شکل باندې سره د سند نه او سره د عبارت نه هغوي ته به دا پته لګیده لکه ابوزرعة الرازي ابوحاتم الرازي امام بخاري امام نسائي امام ترمذي رَحِمَهُمُ اللهُ هم خلک ددې اهل نه ګڼي د تصحیح او د تضعیف اهل یې بعضې نه ګڼي بلکې دې ناقل ګڼي د اقوالو د هغوي.

نو مرتبه علمي د الباني چې کومه وه په هر لحاظ سره دې داسې مدرس د فنونو نه وه پاتې شوې چې ګڼې ده علم کړې وه بیا یې تدریس کړې وه بیا یې ګڼې بخاري او مسلم درس کړې وه شیخ الحدیث پاتې شوې وه نه دا شامله د برطانویانو په کومکونو باندې دا دوي ټول کتب کمپیوټر ته ورسول غیر یې خبر نه کړل چې دا مونږ رسولې دي دا یې درج کړل او کمپیوټرو ته یې خپل شاګردان کینول او په حدیثو ولګیدل چې کوم یې خوښ وه قوي چې کوم یې خوښ نه وه ضعیف تقریباً دوه ویشت (۲۲) کاله دا مکتبه دوي پټه وساتله هیڅ ا ته یې هم ښکاره نه کړه چې ګڼې مونږ داسې مکتبه لرو او داسې خواري مو کړې ده.

دوه ویشت (۲۲) کاله بعد علماء او معاصرین په دې باندې د هغه دور د شام قاضي القضاة عبدالله هیرري الحبشي یا حسن بن علي الثقاف یا ابوغده دا عمده عمده اشخاص چې وه یا محمد صدیق الغماري دا خلک پرې باندې خبر شول چې دا خو مونږ وویل چې ګڼې

دا کتاب نه لګیا دي دا خو کمپیوټر ته ننبتې دي او علم نشته په اسماء الرجال له ځان نه لګیا دي دا ځیزونه کوي هغې نه بعد په تالاش باندې دوي دا مکتبې حاصلې کړي او خپلې مکتبې یې هم جوړې کړي.

نو د هغوي یې کلکه مقابله وکړه نو په الباني باندې مختلف ردود شوې دي یو ائې حسن بن علي الثقاف په نوم د تناقضات الالباني الواضیحات باندې ۷ جلد کتاب لیکلې دي لیکن وهابیانو سره پیسې دي چې قصه خوانې ته راشي چې هر څو جلد پیسو باندې واخلي چا ته یې نه پریږدي چې واي خلي خو ډیر ضروري کتاب دي دري جلد ما حاصل کړې دي په ډیر تلاش باندې خو دا ۷ جلد کې شائع دي.

دې په خپل کتاب کې وایي که ډیو سړي غلطي یوه یې دوه یې حتی که (۱۰) هم واي ما ده پسې کتاب نه لیکه بلکې زما په علم کې دده غلطي (۱۰۰۰) ته رسیدلې دي یعنې (۱۰۰۰) ځایه د صحیح ته ضعیف ویلې او ضعیف ته یې صحیح ویلې بیا دا ۷ جلد کتاب د لیکلې دي او په دې کې صرف تناقضات الباني را غونډ کړي دې تاسو ته ما په تلك عشرة كاملة باندې اکتفاء کړې ده ما دا مشت نمونه خروار پیش کړې دي.

باقي تاسو به دا کتاب د حسن بن علي الثقاف په نوم پیدا کړې داد متکلمینو نه دي په علم کلام کې ډیر زیات وارد دي او دده تقریباً ۱۳ کتب ما پیدا کړې دي ډیر ښکلي کتابونه دي او خپله شافعي مذهبي دي د شام دي او د شیخ عبد الله هیرري حبشي شاګرد دي هغه د شام قاضي القضاة وه وفات شوې دي او طریقه قادریه به یې چلوله او د فقهې شافعي یو امام وه او دده ډیر شاګردان وه نو دا یوه لویه مقابله د اهل حدیثو له اهل سنت سره روانه وه چې داد شیخ عبد الله هیرري حبشي او د الباني په مینځ کې وه او ۱٦ مناظرې د شیخ عبد الله هیرري الحبشي او د الباني په مینځ کې شوې دي.

ما په مسقط عمان کې د شیخ عبد الله هیرري الحبشي ۱٦ شاګردان ما ته راغلل څه طالبان وه څه علماء وه بیا یې ما سره ډیر شپې وکړې عرب وه او د هغوي زما عقیده او مسلک او دلائل ډیر خوښ شول بیا هغوي ما ته ډیر کلک وه چې مونږ به تا شام ته بوځو مونږ به خپل شیخ ته تا ښایو چې پاکستان کې هم داسې علماء دي چې ددې خلکو مخالف دي بیا چې په دویم ځل زه مسقط عمان ته لاړم دوي شام ته تللې وه نو د شام نه یې ما ته په تحفه کې

د هيرري حبشي د علي الثقاف د مختلفو علماو تقريباً ۳۰ کتابو نه په تحفه کې راکړه هغه کتابو نه اکثراً دلته پيدا کيږي نه خو هر يو انتهائي د کمال نه ډک کتابو نه په رد د وهابيانو هغوي ليکلي دي.

تاسو اوس ګورئ دالباني هغه تعصب لره يو کتاب ليکلي په نوم د صحيح وضعيف سنن النسائي صحيح او ضعيف يې بيل کړې دي جلد ۷ صفحه ۴۷۳ ده حديث پيش کوي چا نبي اکرم صلى الله عليه ته وويل د يو سړي باره کې:

طلق امرأته ثلاث تطليقات جميعاً فقام غضباناً. نبي عليه السلام په غصه پاڅيده.

ثم قال ايلعب بكتاب الله وانا بين اظهركم حتى قام رجل وقال يا رسول الله الا اقتله.

تحقيق د الباني ده ضعيف دا حديث ضعيف دي په صحيح ضعيف نسائي جلد ۷ کې دې ته ضعيف وايي.

ثم ناقضه.

بيا نور دده له ياده وتلي دي چې ما خو په يو کتاب کې دې ته ضعيف ويلې خپله يې تناقض پرې وارد کړې په کتاب غاية المرام في تخريج احاديث الحلال والحرام دده کتاب دي په جلد ۱ صفحه ۱٦۴ کې وايي صحيح.

وقد صح أن رسول الله صلى الله عليه وسلم اخبر عن رجل طلق امرأته ثلاث تطليقات جميعاً فقام غضبان ثم قال ايلعب بكتاب الله وأنا بين اظهركم.

نو دې وايي:

صحيح اخرجه النسائي اخراج يې نسائي کړې حديث صحيح دي يو حديث دي يو متن دي يو سند دي.

يو کتاب را اخيستې دي هغلته په صحيح ضعيف نسائي کې وايي چې ضعيف او دلته وايي چې صحيح نو دده په قول څنګه اعتماد وشي.

دروغجن واي حافظه نه لري هغه قول يې هم په دروغو کړې تحقيق سندي يې نه دي کړي بس قول يې کړې دا يې هم په دروغو کړې.

**دویم تناقض :** مختصر ارواء الغليل جلد ۱ صفحه ۱۱۹ کې دا حديث پیش کوي:

**قال ﷺ الجمعة على من سمع النداء رواه ابو داؤد .**

نو الباني په مختصر ارواء الغليل کې ليکلي دي حسن .

او په صحيح مشکاة المصابيح په هغې کې ليکي جلد ۱ صفحه ۳۰۷ کې وايي **ضعيف**

هلته يې حسن کړو دلته يې ضعيف کړو .

**دریم تناقض :** صحيح ضعيف سنن النسائي جلد ۱ صفحه ۱۷۳ کې :

**اخبرنا علي بن حجر قال انبأنا شريك عن المقدام بن شريح عن ابيه عن عائشة رضي الله عنها قالت من حدثكم ان رسول الله ﷺ بال قائماً فلا تصدقوه ما كان يبول الا جالساً .**

تحقيق د الباني دادی **صحيح** ، سلسلة الاحاديث الصحيحة صفحه ۲۰۱ .

**ثم ناقضه** . بيا مناقضه پرې پيش کوي تناقض دي .

صحيح مشکاة جلد ۱ صفحه ۷۸ کې ليکي **ضعيف** .

نو دغه حديث يې په سلسلة الاحاديث الصحيحة کې صحيح کړو .

**ثم ناقضه** .

مشکاة المصابيح جلد ۱ صفحه ۷۸ کې وايي **ضعيف** .

**څلورم تناقض :** سلسلة الاحاديث الصحيحة جلد ۴ صفحه ۳۰۳ کې وايي دا حديث ذکر کوي :

**ثلاثة لا تقربهم الملائكة : الجنب والسكران والمتضمخ بالخلوق .**

الباني وايي **: اخرجه البزار .**

بيا وايي **: قلت وهذا اسناد صحيح كما قال المنذري في الترغيب : جلد ۱ صفحه ۹۱ ، ورجاله ثقات ، ثم ناقضه** . بيا بيرته مناقضه پرې پيش کوي .

صحيح وضعيف الجامع الصغير جلد ۳ صفحه ۳۱۶:

ثلاثة لاتقربهن الملائكة بخير جيفة الكافر والمتضمخ بالخلوق والجنب.

تحقيق د الباني دادى: ضعيف.

نو په كتاب د سلسلة الاحاديث الصحيحة كې صحيح كړ او رجاله ثقات، او په صحيح ضعيف جامع الصغير كې ضعيف كړ.

**پنځم تناقض:** الجامع الصغير وزيادته جلد ۱ صفحه ۱۱۷۶ دا حديث چې:

النوم اخو الموت ولا يموت اهل الجنة.

د حضرت جابر رضي الله عنه روايت پيش كوي:

قال الشيخ الالباني صحيح. دا حديث صحيح دي.

مشكاة المصابيح جلد ۳ صفحه ۲۲۸ كې ليكي: ضعيف، دا ضعيف دي.

دارنګې صحيح وضعيف سنن ابي داؤد جلد ۹ صفحه ۳۰۹ كې هم ضعيف ذكر كوي.

**شپږم تناقض:** سنن ابي داؤد كې دا حديث:

عن عبدالله بن عمرو عن النبي صلى الله عليه وسلم قال اتركوا الحبشة ما تركوكم فانه لا يستخرج كنز الكعبة الا ذو السويقتين من الحبشة.

تحقيق د الباني دادى حسن، بيا مشكاة المصابيح جلد ۳ صفحه ۱۷۸ كې ليكي: ضعيف، دا ضعيف دي.

**اوم تناقض:** مشكاة المصابيح جلد ۱ صفحه ۳۷۹ كې دغه حديث چې:

وعن عبادة بن الصامت قال كان رسول الله صلى الله عليه وسلم اذا تبع جنازة لم يقعد.

ددې حديث باره كې ليكي: ضعيف، دا حديث ضعيف دي.

او بيرته په صحيح ابن ماجة جلد ۱ صفحه ۲۵۸ كې ليكي: حسن دا حديث حسن دي.

**اتم تناقض:** مشكاة المصابيح جلد ۳ صفحه ۵:

وعن عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده رضي الله عنه ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال ليس منا من تشبه بغيرنا لا تشبهوا باليهود ولا بالنصارى الخ .

ددې باره کې ليکي : ضعيف ، او بيا په الصحيحة کې او په صحيح وضعيف سنن الترمذي جلد ٦ صفحه ١٩٥ کې همدا حديث ذکر کوي تحقيق الالباني دادی حسن .

**نهم تناقض :** صحيح الترغيب والترهيب جلد ٢ صفحه ٨٢ کې :

وعن ابي هريرة رضي الله عنه ان النبي صلى الله عليه وسلم كتبت عند سورة النجم فلما بلغ السجدة سجد وسجدنا معه وسجدت الدواة والقلم .

نو دا ذکر کوي چې رواه البزار باسناد جيد ، او دې خپله وايي : حسن ، حسن دي .

ليکن مشکاة المصابيح جلد ١ صفحه ٢٢٦ کې ليکي : ضعيف .

**لسم تناقض :** صحيح وضعيف الجامع الصغير جلد ٥ صفحه ٥٩ کې دا حديث ذکر کوي :

اذا عمل احدكم عملاً فليتقنه فانه مما يسلي بنفس المصاب .

نو ددې حديث متعلق دي ليکي : تحقيق د الباني دادی : ضعيف جدا ، سخت ضعيف دي .

بيرته بيا صحيح وضعيف الجامع الصغير جلد ٧ صفحه ٢٠٨ کې ليکي :

عن عائشة رضي الله عنها روايت پيش کوي تحقيق د الباني دادی حسن ، دا حسن دي يو ځای حديث صحيح بيا ضعيف بيا ضعيف وي بيا حسن وي .

دا مُشت نمونه خروار په دې شکل دا ما په دې شامله کې کتب الالباني چې څومره دده کتب دي هلته شته دي دا هغې نه ما لږ خواري وکړه تقريباً نيمه ګينټه او دده تناقضات مې راويستل نو دا صاحبان بيا ناست دي ورته دده کتابونو ته .

نو حسن بن علي الثقاف ورکې زر (۱۰۰۰) تناقضات بنايي چې ما زر تناقضات دده کتابونو کې پيدا کړه چې صحيح ته ضعيف ويلې او ضعيف ته يې صحيح ويلې نو بيا يې يو ځو جلدونه په دې هم ليکلي چې دې ورته ضعيف وايي نو هغه ضعيف نه وي .

دا خبره يې له ځان نه کړې وي بيا يې په هغې اقوال را اخيستې دي کوم حديث ته چې ده صحيح ويلې وي هغه صحيح نه وي هسې له ځانه لګيا وي هغه ضعيف وي ده صحيح کړې وي بيا يې په هغې هم تحقيقات کړې دي .

نو خلاصه ددې مختصر مسئلې داده چې ددغې البانې په کتبو اعتماد مه کوي مکتبه کې کتب اخلي تخريجات والا مه اخلي او که اخلي نو د شعيب الأرنوط والا د الباني دا تحقيقات مه ګوري په دې کې که تحقيقات ګوري د حسن بن علي الثقاف وګوري بعضې تحقيقات علامه کوثري کړي هغه وګوري بعضې تحقيقات حافظ العراقي کړې هغه وګوري بعضې تحقيقات ابو غده کړې دي بعضې تحقيقات محمد صديق الغماري کړې دي بعضې شيخ عبد الله هيرري کړې دي هغه تحقيقات معتمد دي .

ددغه الباني او د شعيب الارنوط وغيره تحقيقات بناء دي په تعصب او مذهبيت ددوي باندې او کوم چې ددوي د رای موافق وه قبول کړې دي او چې نه وه رد کړې دي ددې لپاره مې دا مختصره موضوع وچيړله .

